# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦٨١ ګڼه / چهارشنبه ۱۳ شعبان المعظم ۱٤٤٦ هـ.ق / د سلواغې ۲٤مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۱۲ فبروري ۲۰۲٥ میلادي


## ځینې هېوادونه د خپلو سیاستونو د سمونې پرځای، د افغانستان او نړیوالې ټولنې ترمنځ بې باوري ایجادوي

بهرنیو چارو وزارت په یوې اعلامیې کې د ملګرو ملتونو سازمان امنیت شورا کې د پاکستان د استازي هغه څرګندونې بې بنسټه بللې دي، چې ګواکې د افغانستان له خوا نورو هېوادونو ته د ترهګرۍ ګواښ شته.

اعلامیه کې ویل شوي، د اسلامي امارت په واکمنېدو سره افغانستان کې د داعش او نورو ډلو مرکزونه ختم شوي او دا مهال هیڅ‌ډاته له افغانستان څخه ګواښ نشته. وراندې راغلي: «که افغانستان کې کومه امنیتي پېښه شوې، نو عاملین یې د ډیورند کرښې له پورې غاړې را اوښتي دي.»

د بهرنیو چارو وزارت وراندې لیکلي چې ځینې هېوادونه د خپل کورني سیاست د سمون پر ځای غواړي د افغانستان او نړیوالې ټولنې ترمنځ بې باوري رامنځته کړي.

## له مولوي ذبیح الله مجاهد سره د شریعت مرکه؛

# د سترو پروژو په بشپړېدو سره به د هېواد هېڅ ځوان بېکاره پاتې نه شي

**شریعت:** **پوښتنه: لومړی مو هرکلی کوو او د بیا او ډېر راتګ هیله‌مندي در څخه کوو. ۱٤۰۳ لمریز کال په تېرېدو دی، په دې کال د اسلامي امارت څو لویې لاسته راوړنې راته په ګوته کړئ او که د نوي کال لپاره د هېوادوالو لپاره زېري هم وي؛ مهرباني؟**

**ځواب:** د شریعت ورځپاڼې له کارکوونکو او لوستونکو مننه کوم او هیله ده د مرکې تر پایه راسره ووسي. اسلامي امارت په تېرو، درې نیم کالو کې لوی ګامونه اخیستي. لومړی دا چې افغانستان له یوه بهرني اشغال ازاد شو، د امریکا په سرکردګۍ د ناټو یو لوی پوځي اتحاد ماتې وخوړه، دا د افغانستان سربېره د نړۍ لپاره یوه لویه لاسته راوړنه وه او هغوی به نور پر هېڅ هېواد ونه بلوسیږي. د داسې زبرځواک تجاوز د هېوادونو پر حریت او ازادۍ خطرناکه ده. افغانستان مېړني ولس د اسلامي امارت په چوکاټ کې له دې ستر ښامار ځان خلاص کړ. بله دا چې افغانستان ته یې مثالي امنیت راوست. د افغانستان امنیت ۴۵ کاله ترورړل شوی و، افغانستان کې ناامني او ملوک الطوافي وه، کشمکش او اختلافات و او د جنګ په نتیجه کې ګڼ... ۳مخ



## د کندهار د مرمر ډبرو را اېستلو تړون له ترکي شرکت سره لاسلیک شو

د کندهار د شاه ولي کوټ ولسوالۍ د دره نور سیمې د مرمر ډبرو کان را ایتسلو تړون د ترکیې هېواد د امي اوغلو د استخراج، پروسس او سوداګریز شرکت سره د ۶،۲ میلیونه ډالرو په ارزښت لاسلیک شو.

دغه تړون د کانونو او پټرولیم وزارت او د یاد شرکت له مرستیال موسی امي اوغلو ترمنځ لاسلیک شو.



د دې شرکت مرستیال ویلي، چې د استخراج او پروسس وروسته به موږ د افغانستان مرمر نړۍ ته معرفي کړو، چې دا د دواړو هېوادونو په ګټه ده.

د ویلو ده، چې دغه تړون له یاد شرکت سره د ۲،۶ میلیونه ډالرو په ارزښت د ۳ کیلو متره مربع په مساحت د ۳۰ کلونو په پاره شوی دی.

## بازگشایی شاهراه سالنگ به‌روی ترافیک

مقام‌های وزارت فواید عامه می‌گویند، شاهراه سالنگ به‌روی ترافیک بازگشایی شده و موترها به‌گونه دو طرف این شاهراه را تردد کرده می‌توانند.

محمد اشرف حق‌شناس سخنگوی وزارت فوایدعامه با نشر خبرنامه‌ای از بازگشایی شاهراه سالنگ خبر داده است.

به گفته آقای حق‌شناس با توقف برف‌باری و بهبود وضعیت جوی، موظفین ریاست حفظ و مراقبت شاهراه سالنگ، جاده این شاهراه را از وجود برف پاک‌سازی و آن را به‌روی ترافیک بازگشایی کرده‌اند. ص۳



## پکتیکا کې بې کیفیته توکي سوځول شوي

د پکتیکا ولایت د صنعت او سوداګرۍ ریاست د مستهلکینو د ملاتړ کمېټې مسئولینو د تېرو دوو ورځو په بهیرکې د زرغون شهر ولسوالۍ له هټیو څخه د ۲ ټنه بې کیفیه او تاریخ تېره خوراکي توکو د راټولولو او سوځولو خبر ورکړی دی.

د یاد ریاست د صنعتي پارکونو او سوداګریزو چارو امرخیال محمد استقلال وایي، چې دوی د ښار لپاره یوه ځانګړې کمېټه لري چې د ښار په دننه کې څارنه کوي او له هټیو څخه بې کیفیته او تاریخ تېره خوراکي او غیر خوراکي توکي راټولوي.

نوموړي زیاته کړه چې دغه راټول شوي توکي د زرغون ... ۳مخ



## هلمند کې قاچاقي نفت او خوراکي توکي نیول شوي

امنیتي ځواکونو همدارنګه د هلمند په خانشین کې یو بنس موټر هم نیولی چې ۵۰۱ کارټنه خوراکي توکي پکې بار وو.

له دې قاچاقي توکو سره ۹ تورن هم نیول شوي چې د لا ډېرو پوښتنو ګروېګنو په موخه اړوندو ارګانونو ته ورپېژندل شوي دي.

د یادونې وړ ده چې امنیتي ځواکونو د ډیورند پر فرضي کرښه تر دې دمخه هم ګڼ ناقانونه قاچاقي توکي نیولي وو.



د هلمند امنیه قومندانۍ رسنیز دفتر ویلي چې ددې ولایت ګرمسېر او خانشین ولسوالیو کې تېره ورځ زرګونه لیټره تېل او خوراکي توکي نیول شوي دي. دا توکي په ۶ موټرونو کې بار وو چې له ګاونډي هېواد هلمند ته په ناقانوني توګه رالېږدېدل.

## سرمقاله



## پر حکومتي تشکیلاتو او لګښتونو بیا کتنه ډېره ضروري ده!

څرنګه چې د تېر شل کلن صلیبي اشغال له دورې موږ ته یو پړسېدلی حکومتي تشکیل را پاتې او موږ لا هم پرته له کمو اصلاحاتو پر هماغه تشکیل روان یو، همدا وجه ده چې اوس یې د لګښتونو درانه پیټي زموږ ملا کږه کړې او ډېر یې ستومانه کړي یو، لازمه ده چې دا وخت ټول افغانان په تېره د امارت مسئولین دا حقیقت له پامه ونه غورځوي چې اوسنی او تېره دوره زښته ډېر توپیر سره لري، ځکه پخوانۍ دوره کې حکومتي اداري د بهرنیانو له خوا برمته او چارواکي یې د ملت خادمان نه، بلکې د یرغلګرو مزدوران وو چې طبعاً مصارف یې هم د بهرنیانو پر غاړه وو، ترڅو چې وایي د سرکاري بودیجې ۳۰ سلنه یې خپل وطني عواید او ۷۰ سلنه یې بهرنیانو ورکوله له همدې امله یې تشکیلات هم دومره پړسولي وو چې د پنځو مأمورینو د کار لپاره یې شل کسان ګمارلي وو، ځکه هغوی غوښتل یوازې د څه مودې لپاره خلک بسیا او مصروف وساتي، خو اوس د خدای فضل دی افغانان خپلواک دي، وطن یې خپل او ټول بیت المال یې د خپلو خلکو او خپلو پیدا وارو پر ګټې ولاړ دی. دغه وضعیت ایجابوي چې لومړی خو د حکومت هر فرد او هر هغه کوچنی یا لوی مأمور او چارواکی چې له همدې بیت الماله نفقه ورکول کېږي، باید دا احساس ولري چې پرته له شکه په تمامه معنی د همدې ملت نوکر دی. ځکه زموږ ټول بیت المال په حقیقت کې د افغانستان د ګرد ملت شتمني او د هغوی شریکه پانګه ده، هغه که زیاتره برخه یې ګمرکي محصولات او که څه ناڅه کاني او معدني عواید وي- مطلب زموږ حکومت له بلې خوا څه نور عواید نه لري، بس هر څه چې دي، همدغه وطني پیدا وار او ټول مصارف او خدمات له همدغو پیسو تمویلېږي. پر دې اساس د ګردو مشرانو او واکمنو ایماني، اخلاقي او وطني مکلفیت دادی چې د خپل بې وزله رعیت د همدغه بیت المال په مصارفو کې له خدایه ووېرېږي، د یوې یوې پیسې څارنه وکړي، د بې ضرورته مصارفو مخه ونیسي، پرحکومتي تشکیلاتو له سره بیا کتنه وکړي، یوازې د حاضرۍ کتاب په لاسلیک چاته معاشونه ور نه کړي، د غټو چارواکو لوړ معاشونه او د موټرو، کورونو او داسې... ۳مخ

## بیش از ۴ هزار کیلوگرام مواد مخدر در کندهار کشف‌وضبط گردید



بربنیاد اعلام مقام‌های محلی ولایت کندهار، ۴ هزار و ۲۱۱ کیلوگرام مواد مخدر توسط نیروهای امنیتی در این ولایت کشف‌وضبط شده است.

به گفته قوماندانی امنیه ولایت کندهار، ۳ هزار ۶۷۶ کیلوگرام چرس، ۴۵۰ کیلوگرام ایف و ۸۵ کیلوگرام تریاک... ص۳

## د کندهار له زندانه شاوخوا ۳۰ تنه آزاد شوي

د کندهار مقام د رسنیو دفتر ویلي چې د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه‌الله د ځانګړې مهربانۍ او لورینې له مخې ددې ولایت له مرکزي زندانه ۳۱ تنه ازاد شوي.

د مسئولینو له قوله، ورته وخت کې د همدې زندان ۱۳۸ نورو بندیانو ته د بند موده راټیټه شوې ده.

دا په داسې حال کې ده چې د امیرالمؤمنین حفظه الله په لورینې د هېواد له بېلابېلو ولایتي زندانونو د روژې، کوچني او لوی اخترونو او نورو ورځو په پار هم سلګونه تنه ازاد شوي وو.

# بېکاري او فقر د امنیت، ټولنیز ثبات او اقتصادي پرمختګ لپاره جدي ګواښونه

**محمد قاسم عزام**

بېکاري او فقر په نړۍ کې د پرمختګ او پرمختللو ټولنو لپاره یو له جدي ترینو ستونزو څخه ګڼل کېږي. د بېکارۍ کچه یوازې د اقتصادي وضعیت یوه نښه نه ده، بلکې د امنیت، ټولنیز ثبات او فرهنګي ودې پر وړاندې هم یو جدي تهدید ګڼل کېږي. کله چې د یو هېواد د بېکارۍ کچه لوړه وي، دا نه یوازې اقتصادي وده او پرمختګ ته زیان رسوي، بلکې د امنیتي بحران، بې نظمۍ او فساد زیاتېدو لامل هم ګرځي. هڅه کوم چې په تفصیل سره د بېکارۍ د لوړوالي اغېزې پر ټولنې، امنیت او د حل لارې په اړه څو کرښې ولیکم

د بېکارۍ د کچې لوړېدل د خلکو په فردي او ټولنیز ژوندانه کې بې نظمي، ناراضګي او غیرقانوني کړنې رامنځته کوي. کله چې خلکو ته کاري فرصتونه برابر نه شي، هغوی بیا د خپلو اساسي اړتیاوو پوره کولو لپاره د غیر قانوني لارو لټولو ته اړ کېږي. دغه غیرقانوني لارې کولی شي بې اعتمادۍ، جرمونو او نورو ناخوالو ته زمینه برابره کړي. بېکاري د دې سبب ګرځي چې وګړي د ټولنیزو او ملي ارزښتونو سره فاصله پیدا کړي، ځکه هغوی ته د ژوند اساسي اړتیاوې پوره کول یو له جدي چلنجونو څخه وي. بې کاره کسان ډېری وختونه د رواني فشار او ذهني فشار سره مخامخ وي، چې دا هم د ټولنې لپاره یو جدي تهدید جوړوي.

د بېکارۍ له امله د دولت ضد غړونه زیاتېږي، ځکه هغه کسان چې د کاري فرصتونو څخه بې برخې دي، د حکومت د ناکامۍ په اړه منفي برداشتونه لري. په دې توګه، بېکاري د ټولنې د بې ثباتۍ، فساد او حتی شورشونو لامل ګرځي. که د بېکارۍ ستونزه حل نه شي، نو دا خپله د امنیت لپاره یو جدي ګواښ دی.

فقر او غربت یوازې د بېکارۍ له امله نه دي، بلکې بېکاري یې یوه مهم لامل دی. کله چې خلک مالي ستونزې ولري او بې وزله وي، نو د ژوند بنسټیزې اړتیاوې (لکه خوراک، تعلیم او صحت)پوره کول ورته ستونزمنېږي. دا نه یوازې د فرد ژوند خرابوي، بلکې د ټولنې په سطحه هم د بې عدالتۍ، اقتصادي نابرابرۍ او ګډوډۍ لامل کېږي. که د بېکارۍ او فقر ستونزې حل نه شي، نو ټولنه به د پرمختګ پر ځای مشکلاتو سره مخ شي.

فقر له بېکارۍ سره په مستقیمه توګه تړاو لري، ځکه چې کله خلک د کار فرصتونو څخه بې برخې شي، د هغوی عاید کم شي او دا فقر رامنځته کوي. فقر نه یوازې په مادي لحاظ ستونزې راولاړوي، بلکې رواني، فرهنګي او ټولنیزې اغېزې هم لري.

د بېکارۍ او فقر له امله خلک مجبورېږي چې د ژوند د بنسټیزو اړتیاوو لکه خوراک، کور، روغتیا او زده کړو پوره کولو لپاره غیر قانوني لارې چارې تعقیب کړي. کله چې دوی د قانوني کارونو څخه بې برخې او بې وسه وي، نو ممکن دوی د غلا، درغلۍ، قاچاق یا نورو ناقانونه فعالیتونو ته مخه کړي. دا کړنې د دې سبب ګرځي چې ټولنه په یوه بې ثباته وضعیت کې را ګیره شي، چېرته چې د قانون د رعایت کچه ټیټه شي او د ټولنې نظم او امنیت ته ګواښ متوجه شي. دغه ناروا کړنې نه یوازې فردي ستونزې رامنځته کوي، بلکې د ټولنې لپاره هم جدي او خطرناک ټولنیز او اقتصادي عواقب لري.

د بېکارۍ د کچې کمولو لپاره مختلفې لارې شته، چې د حکومتونو او ټولنو لپاره اړین دي. د دې ستونزې د حل لپاره لاندې وړاندیزونه ممکن مثمر ثابت شي:

۱- زده کړه او مهارتونه:

د بېکارۍ کمولو یوه مؤثره لاره د خلکو د مهارتونو لوړول دي. حکومت باید د خلکو د تعلیمي نظام ښه کولو ته ځانګړې توجه وکړي ترڅو د هغوی مهارتونه د کاري بازار اړتیاوو سره سمون ولري. دې ته په پام سره، د روزګار د فرصتونو زیاتولو لپاره د خلکو د مهارتونو روزنه او پرمختګ اړین دی.

۲-میکرو فایننس او کاري فرصتونه:

د وړو کارونو او سوداګریو مالي ملاتړ کول د بېکارۍ کچې د کمولو لپاره مهمه لاره ده. میکرو فایننس پروګرامونه خلک تیاروپ چې خپل کاروبار پیل کړي، چې دا نه یوازې د بیکارۍ د کمولو سبب ګرځي، بلکې د ټولنې اقتصادي پرمختګ ته هم وده ورکوي.

۳- صنعتي او زراعتي پراختیا:

د صنعتي سکتور له پراختیا سره سره د زراعت په برخه کې نوې ټیکنالوژۍ رامنځته کول د کاري فرصتونو زیاتولو یوه مهمه لاره ده. حکومتونه باید د داسې پروګرامونو ملاتړ وکړي چې د کار لپاره نوي فرصتونه رامنځته کړي.

۴-د دولتي او شخصي سکتور همکاري:

د دولتي او شخصي سکتور همکاري د بېکارۍ د کمولو لپاره اړینه ده. د دولتي پروژو او طرحو پلي کول چې د کاري فرصتونو زیاتول هدف لري، کولی شي د بېکارۍ کچه کم کړي. همدارنګه، د شخصي سکتور ته د پانګونې جذبول د اقتصادي پرمختګ لپاره اړین دي.

۵-ټولنیز ملاتړ پروګرامونه:

د بېکاره کسانو لپاره ټولنیز ملاتړ لکه د روغتیا، تعلیم او د کورنیو اړتیاوو ملاتړ کول کولی شي خلک له فقره وژغوري. دا پروګرامونه د خلکو لپاره له بېکارۍ نه وروسته د ژوند اساسي اړتیاوې پوره کوي.

د بېکارۍ لوړه کچه یوازې د اقتصادي او ټولنیزو ستونزو لامل نه ده، بلکې د امنیتي بحران ته هم لاره هواروي. کله چې بېکاري زیاته شي، خلک د حکومت ضد تحریکونو ته راکاږي، چې په پایله کې د ټولنیز ناخوالي سبب کېږي. بې کاره خلک اکثره د ترهګرۍ، جرمونو او د حکومت ضد فعالیتونو ته غاړه ږدي.

د بېکارۍ لوړوالی د امنیتي کړکېچ د پیلولو لامل ګرځي، ځکه چې بېکاره وګړي د خپل ژوند په اړه ناامنۍ او بې باورۍ احساس کوي. کله چې دوی د ټولنیزو خدمتونو څخه بې برخې وي، هغوی هڅه کوي چې د خپل حق لپاره د زور کارولو له لارې غږ پورته کړي. د بېکارۍ کچه باید د هیوادونو په کچه جدي مسئله وګڼل شي. د بېکارۍ د کمولو لپاره باید د تعلیم، مهارتونو، اقتصادي پراختیا، میکرو فایننس، صنعتي او زراعتي پروګرامونو له لارې فعالیت وشي. د بېکارۍ له کمولو سره نه یوازې د ټولنې اقتصادي وضعیت ښه کېږي، بلکې د امنیتي بحرانونو مخنیوی هم ممکن کېږي. هر حکومت او ټولنه باید د بېکارۍ او فقر کمولو لپاره پراخې پالیسۍ او پروګرامونه تطبیق کړي، ترڅو د ټولنې د ثبات په لور محکم قدمونه پورته کړي.

# بررسی سیاست‌های امپریالیستی ترمپ در ۲ دوره ریاست جمهوری

**احمد ضیا سروری**

سیاست های دونالد ترمپ در دوران ریاست جمهوری طی سال های ۲۰۱۷ الی ۲۰۲۰، بر اساس اصول «اول امریکا» شکل گرفت، که رویکردی ناسیونالیستی و یک جانبه گرایانه به مسایل جهانی داشت. این سیاست‌ها در چارچوب امپریالیسم نوین امریکا تحلیل می‌شود، که نه از طریق اشغال نظامی مستقیم، بلکه با فشارهای اقتصادی، تحریم‌ها، حمایت از متحدان خاص، و خروج از معاهدات بین‌المللی بوده است. در دور نخست، این رویکردها نه تنها سبب افزایش تنش‌ها در عرصه بین‌المللی گردید، بلکه امنیت جهانی را به طور قابل توجهی مختل ساخت. در ادامه، ابعاد مختلف این سیاست‌ها و پیامدهای ناشی از آن را مورد بررسی قرار می‌دهیم، که از آن جمله یکی آن تضعیف نهادهای چند جانبه گرا و خروج از معاهدات بین‌المللی بود. از جانب دیگر، یکی از مشخصه‌های سیاست خارجی ترامپ، بی‌اعتمادی به سازمان‌های بین‌المللی و تلاش برای کاهش نقش امریکا در این نهادها بود، که می‌توان روی برخی از مهم‌ترین اقدامات وی در این زمینه اشاره کرد. به گونه مثال خروج از توافق پاریس (۲۰۱۷)، این اقدام ضربه ای جدی به تلاش‌های جهانی برای مقابله با تغییرات اقلیمی وارد کرد و باعث شد برخی کشورها نیز تعهدات خود را کاهش دهند. خروج از برجام (۲۰۱۸)، این اقدام باعث افزایش تنش‌ها میان ایران امریکا و متحدان آن شد و منطقه خاورمیانه را به سمت بی‌ثباتی بیشتر سوق داد.

کاهش تعهدات امریکا به سازمان ملل: ترامپ بودجه امریکا به سازمان های بین‌المللی مانند سازمان صحی جهانی را بطور قابل توجه‌یی کاهش داد. همه‌ای این اقدامات باعث شد که نظام بین‌المللی که بر مبنای همکاری چند جانبه شکل گرفته بود، دچار بحران اعتماد شود و کشورها به سیاست های یک جانبه گرایانه روی آورند، که به افزایش تنش‌های منطقه ای و جهانی منجر شد. بگونه مثال تحریم‌های شدید علیه ایران، ونزوئلا و کوریای شمالی، این تحریم‌ها نه تنها رژیم‌های این کشورها را تحت فشار قرار داد، بلکه موجب بحران‌های انسانی گسترده‌تر نیز گردید. از سوی دیگر، جنگ تجاری با چین: اعمال تعرفه‌های سنگین بر کالاهای چینی و مقابله با تکنالوژی این کشور، باعث افزایش تنش‌های ژئوپلیتیک بین دو قدرت بزرگ اقتصادی جهان شده و خطر تقابل نظامی را نیز افزایش داد. در ادامه اعلان جنگ های تجاری ترامپ، اروپا نیز به عنوان متحد دیرینه امریکا از این غرش‌های ترامپ در امان نبود. ترامپ تعرفه‌های گمرکی بر کالاهای اروپایی نیز وضع کرد و با تهدید به تحریم، تلاش کرد سیاست‌های اقتصادی این کشورها را تحت کنترول خود در آورد. افزایش بودجه نظامی امریکا از دیگر اقدامات بود، که بودجه دفاعی امریکا را به شکل بی سابقه‌ای افزایش داد، که منجر به رقابت تسلیحاتی بین امریکا، روسیه، و چین شد. همچنان ترامپ در دور نخست ریاست جمهوری اش، از اسرائیل در برابر فلسطین بطور یک جانبه حمایت کرد، که این رویکرد امپریالیستی وی نیز شامل انتقال سفارت آمریکا به بیت‌المقدس و همچنان حمایت از طرح الحاق کرانه باختری بود، که در فرجام موجب افزایش درگیری‌ها در منطقه گردید.

دور دوم ریاست جمهوری ترامپ: در این دور او با تداوم رویکردهای امپریالیستی‌اش تأکید بر گسترش نفوذ و قدرت امریکا در عرصه بین‌المللی داشت. بعد از مراسم تحلیف ترامپ بر خلاف باورها و انتظارات برخی متحدین امریکا، زنگ جنگ‌های تجاری و تحریم‌های اقتصادی را علیه برخی متحدین نزدیک‌اش پرداخت، که به عنوان ابزار سلطه گری سر و صداهای بزرگی را خلق کرد. آنچه را که ترامپ از تحریم‌ها و جنگ تجاری به عنوان ابزار فشار اقتصادی طی چند روز پسین استفاده کرد، موجب بی ثباتی در نظام اقتصادی جهان شده و تقریباً نظم داد و ستد جهانی را متأثر نمود. این سیاست ها در چند محور اصلی قابل بررسی می‌باشد. گسترش قلمرو و نفوذ امریکا: ترامپ در جریان سخنرانی مراسم تحلیف خود به صراحت اعلام کرد که امریکا باید ثروت و قلمرو خود را افزایش دهد. او به طور خاص به باز پس‌گیری کانال پاناما اشاره نموده و همچنان باورهای مانند خرید گرینلند از دنمارک و تشویق کانادا به پیوستن به امریکا را مطرح کرد. این تمایلات خود نشان دهنده بازگشت به سیاست‌های امپریالیستی قرن نوزدهم است که در آن کشورها به دنبال گسترش سر زمین‌های خود بودند. سیاست‌های اقتصادی و تجاری تهاجمی: در حوزه اقتصادی، ترامپ با اعمال تعرفه‌های گسترده و اتخاذ مواضع ضد جهانی سازی، به دنبال تقویت اقتصاد داخلی امریکا است. این سیاست‌ها، اگرچه با هدف حمایت از تولید داخلی انجام می‌شود، اما می‌تواند به تشدید بحران‌های اقتصادی و افزایش تنش‌های تجاری با سایر کشورها منجر شوند.

اگر در رابطه به تأثیرات این گونه رویکردها بر نظم بین‌المللی نظری بیندازیم، می‌توان گفت که سیاست‌های امپریالیستی ترامپ در دوره دوم ریاست جمهوری با تأکید بر گسترش نفوذ اراضی، اتخاذ سیاست های اقتصادی و مهاجرتی تهاجمی بوده و می تواند به بی ثباتی در نظم بین المللی منجر شود.

تمایلات او برای گسترش قلمرو و نفوذ امریکا ممکن است سایر کشورها، مانند روسیه و چین، را به ادعاهای داشتن سرزمین‌های بیشتر تشویق کند، این خود در اصل سبب افزایش تنش‌های جهانی شده و جهان را در آینده نه چندان دور وارد یک فاز جدیدی از رقابت‌های ناسالم خواهد کرد. از سوی دیگر، در روزهای اخیر، جهان شاهد گستاخی دیگری مبنی بر تصرف نوار غزه بود، که با بی‌شرمی و دیده درایی کامل، چندین بار از سوی ترامپ مطرح گردید. آنچه درد ناک و درعین حال قابل تأمل است، این حقیقت است که سرنوشت این نبرد نه به دست ترامپ، بلکه با فداکاری‌ها و مقاومت مردم فلسطین رقم خواهد خورد. مبارزه حق طلبانه این ملت پا برهنه اما سربلند، در طول پانزده ماه جنگ ویرانگر علیه یکی از بزرگ ترین رژیم‌های سرکوبگر و در برابر بمب‌های هوشمند امریکا، نشان داد، که زبان زور دیگر کارایی چندانی ندارد. آنچه اهمیت دارد، حق زیستن و مفاهمه‌ای است که این ملت در سرزمین تاریخی خود مطالبه می‌کند.

در نهایت، اگر نگاهی گذرا به تاریخ و رخدادهای مشابه بیندازیم، بی تردید برنده این میدان، مردم مظلوم فلسطین خواهند بود، نه ترامپ. طرح‌های شیطانی استکبار جهانی و هم پیمانان سفاک‌شان، تنها روی کاغذ باقی خواهد ماند و گذر زمان، این ادعا را ثابت خواهد ساخت.



# له ګناه څخه د خلاصون هڅه د بریا راز دی

**خالد تسل**

- زلیخا د ګناه کولو هڅه کوي او یوسف علیه السلام د خلاصون هڅه؛ لومړۍ هڅانده ناکامه ده، دویم هڅاند بریالی دی. زلیخا یوسف علیه السلام ته وایي: یوسفه! دا سترګې دي ډېرې ښکلي نه دي؟ .یوسف علیه السلام ورته وایي: چې مرم ، اول به مې دا دوې سترګې پټېږي.

زلیخا بیا یوسف علیه السلام ته وایي:دا مخ دي ډېر ښکلی نه دی؟یوسف علیه السلام ورته وایي: اول به دا چېر کېږي. زلیخا بیا یوسف علیه السلام ته وایي: لاسونه دې ډېر ښکلي نه دي؟ یوسف علیه السلام ورته وایي:اول به دا خاورې کېږي. حُسن د خاورو خوراک دی او عمل بیا د کامیابۍ ضامن دی. له ګناه څخه د خلاصون هڅې یوسف علیه السلام واک ته ورسوو او د زلیخا سره یې حلاله نکاح هم وشوه.

-د مُشکي بابا کیسه ډېره مشهوره ده . مُشکي بابا یو سوداګر و. کوڅو کې به ګرځېده ، خپله سودا به یې خرڅوله . ډېر ښایسته ځواني الله جل جلاله پرې پېرزو کړې وه. یوه ورځ یوې ښځې ترینه د سودا اخیستلو په پلمه ځانته وبللو او کور ته یې بوتللو؛ ښځې ترینه د ګناه کولو غوښتنه وکړه، مشکي بابا حک حیران شو، د هڅې په پلمه یې یوه د خلاصون لار ذهن ته راغله. ښځې ته یې وویل: سمه ده دا کار به وکړو، خو زه لږ تشناب خوا ته ځم، ښځې ورته وویل: سمه ده لاړ شهٔ! ځان هم لږ ومینځه، مشکي بابا چې لاړو، نو هلته یې غټ اودس ماتی وکړو او ځان یې سم پرې ککړ کړ او دباندې راووت. ښځې چې ولید نو ویې ویل : وزهٔ زما له کوره دا دې ځان په څه لړلی. له هغې ورځې وروسته له مشکي بابا نه تر مرګه پورې د مشکو خوشبویي خپرېدل پیل شول.

-د عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې یو ښایسته ځوان و،ډېر زیات عبادت ګزاره و، یو نجلۍ پرې مینه وه، دا ځوان چې به د لمانځه لپاره مسجد ته راتللو، په لار کې به هغه نجلۍ ورته ولاړه وه ، د ده نظاره به یې کوله، ده به هېڅ رقم د هغې خوا ته نه ورکتل او نه یې هم سوڅ په خرابولو. یوه ورځ داسې پېښه وشول چې نجلۍ دې ځوان ته وویل : زه تل ستا لاره کې تاته په انتظاره ولاړه یم او ستا څارنه کوم، ته هېڅ توجه زما لوري ته نه کوې؟ راشهٔ! کور کې نن هېڅوک نشته دوې دقیقې به بنډار سره وکړو، ځوان ته هم شیطان وسوسه ور واچوله او کور ته یې د تګ تکل وکړ ، د نجلۍ د کور له دروازې سره یې ذهن ته دا آیت مبارک راوګرځېد « إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوۡاْ إِذَا مَسَّهُمۡ طَٰٓئِفٞ مِّنَ ٱلشَّيۡطَٰنِ تَذَكَّرُواْ فَإِذَا هُم مُّبۡصِرُونَ. » آیت یې په ژبه جاري شو او بیهوشه شو، نجلۍ چې ځوان بیهوشي ولیده نو هغې ته یې هم کور معلوم وو، ځوان یې د خپل کور له دروازې څخه د دوی د کور دروازې ته انتقال کړ ، څه موده وروسته یې له کور څخه پلار راووت، خپل ځوان زوی یې خاورو کې پروت ولید، پوښتنه یې ترې وکړه، زویه! خیر څه درشوي؟ د ځوان ذهن ته بیا ایت را وګرځېد ، بیا بیهوشه شو، پلار خپل زوی کور ته یووړ ، کله چې په هوش کې راغی. ځوان کیسه خپل پلار ته بیان کړهٔ او ایت یې په ژبه جاري شو او وفات شو. سهار عمر فاروق رضي الله عنه ځوان په مسجد کې و نه لید ، پوښتنه یې وکړه چې نن په مسجد کې هغه فلانکی ځوان نه معلومېږي ؟ پلار یې ورته وویل: هغه خو پرون وفات شو .پلار د ځوان زوی له خولې اوریدلې پوره جریان له امیرالمؤمنین عمر فاروق رضي الله عنه سره شریک کړ، امیرالمؤمنین یې قبر ته ولاړ او هلته ځوان ته مخاطب شو ، چې آیت مبارک ستا لپاره د مرګ سبب نه شو، بلکې د دیدار الهي لپاره یوه وسیله شوهٔ، ته کامیاب شوې.

له دغو درېیو جالبو کیسو به درته په ډاګه شوې وي، چې له ګناه څخه د خلاصون هڅه رښتیا هم د بریا راز دی.

**اللهم انا نستعینک علی طاعتک**

## د سترو پروژو په بشپړېدو سره به د هېواد...

تلفات رامنځته کېدل؛ دا هغه څه وو چې موږ وګالل او الحمدلله اوس د سرتاسري امنیت شاهدان یو او وینو یې. بله لاسته راوړنه د اسلامي حکومت حوړول و، اسلامي حکومت د میلیونونو شهیدانو ارمان و، د شوروېانو او امریکایانو د وخت د ټولو شهیدانو هیله هم دا وه چې اسلامي حکومت جوړ شي.

د افغانستان حریت او استقلال نافذ شو، هېڅ هېواد نه شي کولی، د افغانستان په کورنیو، حکومتي، سیاسي او اقتصادي چارو کې مداخله وکړي؛ حالنکه یو وخت موږ د ټکرونو میدان و. په اقتصادي برخه کې لویې پروژې پیل شوې، د افغانستان په لویه ملي سطحه د تاپي پروژې پیل، د قوشتېپې کانال، د واخان سړک وصلېدل، د سالنګونو لویې لارې بیا رغول، کابل ـ کندهار سړک جوړېدل، د هرات ـ هلمند سړک، کندهار ـ ارزګان سړک جوړېدل، او د بادغیس ـ هرات، غور ـ هرات سړکونه تر څار لاندې راتلل. همدارنګه د صنعت په برخه کې د اسلامي امارت تر بریالیتوب‌ه تراوسه شاوخوا ۱۵۰۰ فابریکو فعالیت پیل کړی او ۸۰۰ نورې فابریکې تر کار لاندې دي، چې نږدې وخت کې به بشپړې شي چې د اسلامي امارت تر بیا تاسیس وروسته به شاوخوا ۲۵۰۰ یا ۳۰۰۰ فابریکو ته یې شمېر ورسېږي. دا د افغانستان صنعت کې یو لوی تحول دی. اقتصادي برنامو کې د افغانستان سوداګري د ټولې نړۍ له هېوادونو سره تامین ده، ګاونډیو هېوادونو سره په ښه کچه سوداګري شته او راکړه ورکړه کېږي. د افغانستان کرنسي ښه پاتې او ارزښت یې لوړ شوی، هېواد دننه د توکو بیه د ټولې سیمې په سطحه ارزانه دی، د کانونو استخراج برخه کې لاسته راوړنې لرو. مس عینک په قرارداد ورکړل شوی. هرات کې د غوریانو کان وسپنې قرارداد، قشقري نفتو کان قرارداد او نورو کې له افغاني ظرفیت، ماشینرۍ او زرګونو کسانو ګټه اخیستل کېږي. دا بنیادي کارونه دي چې شوي.

زموږ ګومان دا دی چې د افغانستان اسلامي امارت په راتلو تر لاس لاندې پروژې چې په ۵ یا ۷ کلونو کې بشپړېږي، د افغانستان په اقتصاد کې ډېر لوی تحول راوستی شي. دا به بنیادي اقتصاد وي چې زموږ ملکیت کې به وي، نه یې څوک ورانولی شي او نه به پکې مداخله کولی شي.

هغه پروژې چې په راتلونکې کې تر تر پلان لاندې دي، د افغان ټرانس پروژه ده چې د وسپنې پټلۍ له ازبکستان څخه پیل له افغانستان څخه تېرېږي او د پاکستان کراچۍ ته رسیږي. له ایرانه هم وسپنې پټلۍ افغانستان کراچۍ وصل کیږي. حاجیګک د وسپنې کان د افغانستان خپل ظرفیت استخراجیږي، تخار کې د سروزروکان افغاني شرکتونو ته په قرارداد ورکړل شوی. دا به د افغانستان ښې منبع واوسي، کانونو برخه کې پراخې پانګونې رامنځته شوې، چې راتلونکې کې به هم د ښه استخراج او اکتشافاتو شاهدان یو او دا د به د افغانستان اقتصاد کې بنیادي ګام وي چې اخیستل کیږي.

**پوښتنه: لویې پروژې ډېرې هوساینې له ځانه سره لري او له اقتصادي پلوه د یوه هېواد ولس بډایوي. د تاپي کارونه تر کومه ځایه رسېدلي او آیا د تاپي ګډونکوونکو هېوادونو سره راشه درشه شته؟**

تاپي د افغانستان په سطحه مهمه پروژه ده چې ۴ برخې لري. یو د ګازو انتقال دی چې له ازبکستانه، پاکستان او هند ته لېږدول کیږي او له دې ګازو افغانستان هم بشپړه استفاده کولی شي. هرات، هلمند او کندهار کې به ورته مرکزونه جوړېږي. ورمه ورځ د ترکمنستان ولسمشر اعلان وکړ چې د تاپي کارونه به لا ډېر چټک شي. دې پروژه کې د افغانستان د برخې بودیجه اوس د ترکمنستان لخوا ورکول کیږي. له دې پروژې به افغانستان ۵۵۰۰ میلیونه ډالره عاید د ګازو د انتقال له لارې ترلاسه کوي، افغانستان به د هرو لسو کلونو په تېرېدو میلیونه مکعبه ګاز ترلاسه کوي او دا کچه به پسې لوړیږي. دې سره به صنعت ګازي شي، برښنا به قوي، د سون توکو کې به له لرګیو استفاده بس شي. له دې کوریډور سره بله پروژه د نوري فایبر ده چې ۴۲ لینونه لري. انټرنټ او ټکنالوژۍ برخه کې لویه مرسته کولی شي، نیمایي به یې تاپي کې مصرفیږي. د افغانستان داخلي انټرنټ سرعت به ورسره لوړ او حتی دومره انټرنټ به وي چې افغانستان یې خرڅ کړي. د تاپي له نللیکې سره یو نیمه پوخ سړک تېرېږي چې د تاپي له بشپړېدو سره به ټرانزیټي موخو لپاره هم وکارول شي.

**پوښتنه: د واخان یادونه مو وکړه. د چین د صنعت او ټرانسپورټ وزارت سره غونډې شته؟ مانا له دې لارې سوداګرۍ ته د هغوی د لېوالتیا کچه څومره ده؟**

واخان یوه ډېره اساسي پروژه ده. د واخان کوریډور خوا کې د چین بازار رامنځته کول او له ځمکې لارې له چین سره وصلېدنه ده.

چین اوسمهال له غربي هېوادونو سره شاوخوا ۶ زره میلیارده ډالره سوداګري لري. د چین او اروپا تجارت د اوبو له لارې په لویو او اوږدو لارو ترسره کیږي، چین که نیمایي سوداګري د واخان له لارې وکړي، که له دې موږ دوه فیصده ټرانزیټ واخلو نو شاوخوا ۶ میلیارده امریکایي ډالره کلنۍ عاید کېږي چې زموږ د بودیجې څو چنده دي. د واخان په اړه له چین سره ځینې تشویشونه وو، خو هغه سطحي دي، تشویشونه یې رفع او لا به ګامونه اخلو.

**پوښتنه: د ډونالډ ټرمپ دویم ځلي واکمنۍ کې له ټولې نړۍ سره مرستې غوڅې شوې او د ډالرو ارزښت د هر هېواد د ملي کرنسیو پر وړاندې پورته شو، چې افغانۍ یې هم له اغېزه خالي نه وه. د افغانیو د لنډمهالي او اوږدمهالي ټیکاو لپاره څه ترلاس لاندې دي؟**

د افغانستان بنیادي اقتصاد د امریکا په اقتصاد او مرستو پورې نه دی تړلی. د امریکا مرستې د ډونر موسسو په واسطه کېدې او دا مرستې ملګرو ملتونو غړې، غربي هېوادونه او نورو هم کولې. دا مرستې د افغانستان اقتصاد نه رغوي، نه انکشافي او نورې بودیجې کې کار ترې اخیستل کیږي. دوی د افغانانو لپاره بنیادي کار نه دی کړی. له بېوزلو افغانانو سره به لنډمهالې مرستې وې چې کېدې. افغانستان اقتصاد په بهرنیو مرستو متکي نه دی. مرستو بندېدل تاوان نه رسوي، افغانۍ ثابته ده. افغانۍ چې لړه ټیټه هم شوه هغه د سیاسي آوازو او د ځینو مافیایي کړیو د ډالرو له وجې وه. افغانۍ به ثابته پاتې کیږي، څوک دې تشویش نه کوي.

**پوښتنه: نن سبا کې په نوم افغاني بهرنۍ رسنۍ ناکره او د ژورنالېزم د آرونو په بډ(ضد) کې مالومات تودوي او د اسلامي امارت د مشرانو د لرلیدونو تفاوتونو ته هوا ورکوي؛ دوی اصلاً غواړي څه؟**

افغانستان کې جګړې دوې نوعې درلودې، یو فزیکي ډګري جنګ و، امریکایانو ټکنالوژي او لښکرې راوستې، افغانانو ورسره مقابله وکړه، هغه ډګري جنګ و. دا یو جنګ خو د دوحې تړون، د امریکایانو له وتو او ماتې او د اسلامي امارت په بریا سره ختم شو. دویم جنګ تبلیغاتي جنګ و متاسفانه غربیانو دا جنګ نه دی درولی او هغه ټولې رسنۍ چې لندن او نورو ځایونو کې فعالې دي، دا ټول د افغانانو پر ضد د امریکا له لوري تمویلیږي.

د پروپاګند جنګ به دوام لري، په نامه رسنۍ د امریکایانو د فنډ له خوا تمویلیږي او په شا یې ټپوي، دوی چې افغانستان کې منفي شی پیدا کړي، غټوي یې. افغانستان کې مثبتې کړنې بیخي زیاتې دي، هغوی ته هېڅ توجو نه کوي، کورنۍ رسنۍ باید له دوی سره په مقابله کې واقعتونه برجسته کړي، واقعتونوته انعکاس، خلک خبر او د خلکو د مالوماتو سطحه لوړه او په بنیادي لاسته راوړنو خلک پوه کړي، بیا به تبلیغات اثر ونه کړي.

**پوښتنه: اسلامي امارت په لومړي ځل لسګونه زره نشه‌یان له رغېدو وروسته آن د کټې وټې څښتنان کړل. د نشه‌یي توکو د مبارزې په باب نور څه ویلی شئ او ایا نړۍ مو دې کار کې معنوي او مادي مرسته کوي؟**

د نشه یي توکو مخنیوي برخه کې افغانستان په خپلو امکاناتو لوی ګامونه واخیستل، مخه یې ونیول شوه، معتادینو د کنټرول، معالجې او بېرته عادي ژوند ته ګرځېدو برخه کې ډېر کار وشو. د نشه یي توکو کښت صفر شوی، د مخدراتو له قاچاق سره مبارزه وشوه. دې برخه کې لویو مصارفو ته ضرورت و، چې متاسفانه نړۍ په دې برخه کې هېڅ کومک ونه کړ. افغانستان په تنها ځان دې برخه کې مبارزه وکړه، نړۍ دې هم د مسئولیت احساس وکړي، افغانستان دې تنها نه پرېږدي. مخدرات نړیوال پدیده ده ټول ته زیان رسیږي.

**پوښتنه: تاسو تېره اوونۍ د حکومت د رسمي کارکوونکو شمېر تر یو میلیون زیاته وښووده؛ ایا د یو وارداتي او مصرفي هېواد لپاره دا شمېر ملاماتوونکی او درونده نه دی؟ موخه مې دا ده چې که فرصتونه پراخ شي او د دولت پر ځای ځوانان په خصوصي سکټور کې وده وکړي څنګه به وي؟**

بلې، د افغانستان رسمي مامورین یو میلیون او ۴۰ زره شاوخوا دي چې له حکومته معاش ترلاسه کوي. تراکم تشکیل دی، دا له تېرې اداري راپاتې تشکیل دی. که څه هم اسلامي امارت غیرضروري اداري لغوه کړې. اداراتو کې تراکم یو اساسي کار ته ضرورت لري، که دا تشکیل لرېده، ډېره کتله بېکاره کېده، له بلې خوا په تعلیمي او نظامي برخو کې تشکیل زیات شو. یو لک ښوونکي، پولیس، اردو او استخباراتو تشکیل شو چې دې برخه کې د هېواد ساتنې لپاره قاطع او باتقوا منسوبین استخدام شول. د تېرې اداري تشکیل مو هم پر خپل ځای پرېښود، له نظامي برخې په استثنا. باید دې برخه کې فني شکل پر مخ ولاړ شو، د کاغذ پرانۍ مخه ونیسو خلکو ته نوره برخه کې کار پیدا شي. زراعت صنعت او شرکتونو سره کار وکړي چې نړۍ کې معمول ده. دا چاره عاجله نه حلېږي او زمان ته ضرورت لري.

**پوښتنه: ښاغلی مجاهد ځوانانو او هغوی چې د هېواد د پرېښودو په لټه دي، څه پیغام لرئ؟ اسلامي امارت ځوانانو ته څومره ډاډ ورکوي؟ په ځانګړي ډول هغوی چې بېلابېلو برخو کې تخصصي زده کړې لري او یا یې په نورو هېوادونو کې مسلکي زده کړې کړي.**

زموږ پیغام ځوانانو او ټولو افغانانو ته دا دی چې ټولو لاسته راوړنو ته د قدر په سترګه وګورو. امنیت، اسلامي نظام، عفت هر څه خوندي دی. هېواد به بېوزله وي، خو راځئ لاس په کار شو، هېڅ کار مفته نه دی، کاري فرصتونه ایجاد کړو. رښتیا هم د ځوانانو لپاره حکومتونو ډېر څه نه دي کړي، محیط هم هغسې نه و جوړ چې ځوانان کارآفریني وکړي، دواړه باید هماهنګ شي، د بېکارۍ مخه ونیسو، نورو هېوادونو ته دې ځوانان شوق نه کوي، هلته هم بېکاري زیاته ده، عربي او غربي هېوادونو کې بیکاري په پراخېدو ده، خپله باید ظرفیت جوړ کړو. سترې پروژې چې بشپړېږي او ثمر ته رسیږي، هېڅ افغان به بېکاره پاتې نه شي. ځوانان دې پر خپل ځان کار وکړي، ځوانان باید په تخصصي توګه ځانونه ورسوي.

ځوانان د افغانستان راتلونکی ټاکي، د افغانستان راتلونکې پر دوی ولاړه ده. د کمپیوټر ساینس، تخنیک او نورو برخو کې دې زده کړې وکړي.

د ځوانانو لپاره د ځوانانو معینیت، معارف او نور لاس په کار دي. تشویق او مایوسي دې له منځه یوسي، راتلونکې کې به اقتصادي ستونزې نه وي. د ابادۍ پر لور به مخ او د اقتصادي برخو کې به ګامونه اخلو او د هېڅ تر تاثیر لاندې به نه یو. افغانستان ډېر کلونه مریض و، ډېر کلونه په بستر کې و، باید ژر تقاضا ونه لرو، منتظر شو دا وخت عبوري دی، عادي حالت ته به ګرځو، بیا به هېڅ وګړی غریب نه وي او د افغانستان هر وګړی به د ښې سرمایې خاوند ووسي.

**خالد افغان**

## پکتیکا کې بې کیفیته توکي...

شهر ولسوال ملا جاوید بدري په شتون کې وسوځول شول. په ورته وخت کې د زرغون شهر ولسوال په هټیوالو غږ وکړ چې دوی په ولسونو بې کیفیته او تاریخ تېره خوراکي توکي و نه پلوري او له ولسونو هم غواړي چې د توکو د اخیستو پرمهال دې د بې کیفیته او تاریخ تېره توکو په اړه له دوی سره همکاري وکړي.

د یادونې وړده، څه موده وړاندې هم د یاد ولایت د عامې روغتیا ریاست له لوري شاوخوا ۵۷ ټنه بې کیفیته او تاریخ تېره درمل او خوراکي توکي وسوځول شول.

## غزني کې د اوبو بند د جوړولو...

د یاد وزارت د معلوماتو له مخې، دغه بند به په ۲۱۰ متره اوږدوالي او ۶ متره لوړوالي سره د ۳۰ زره متر مکعب اوبو د ذخیره کولو وړتیا ولري.

یاده دې شي، چې له دې سره به د یادې سیمې لسګونه تنو ته پکې د کار زمینه هم برابره شي.

## آغاز کار یک پروژه انکشافی...

در خبرنامه آمده که هزینه ساخت پروژه متذکره از سوی موسسه غذا و زراعت سازمان ملل متحد (FAO) پرداخت می‌شود.

سهولت برای باشندگان ولسوالی میوند و جلوگیری از ضایع شدن آب زراعتی از اهداف این پروژه گفته شده است.

وزارت آب و انرژی تاکید کرده که قرار است کار ساخت پروژه یادشده در مدت ۵ ماه تکمیل و به بهره‌برداری سپرده شود.

گفتنی‌است که تطبیق پروژه‌های انکشافی در راستای مدیریت آب‌های کشور از اولویت‌های امارت اسلامی به شمار می‌رود.

## فراه کې ۴ زره کورنۍ له برښنا...

په لګولو سره د فراه ښار ۶ نورو ناحیو اوسېدونکو ته هم برېښنا برابره شي.

د سیمه ییزو مسوولینو په وینا، فراه ښار کې د برېښنا برابرول د سیمې د خلکو پر ژوند او اقتصادي فعالیتونو مثبته اغېزه کړې ده. ځایي اوسېدونکي اوسنۍ برېښنا د ټولو لپاره کافي نه بولي او له مسوولینو څخه په دې برخه کې د لا زیاتو هڅو او بخش اباد بند د ژر تر ژره رغولو غوښتنه هم کوي.

## بازگشایی شاهراه سالنگ...

سخنگوی وزارت فواید تاکید کرده که ضخامت برف در سالنگ شمالی ۴۲ سانتی‌متر و در سالنگ جنوبی ۳۴ سانتی‌متر است.

شاهراه سالنگ یک‌شنبه‌شب، در پی برف‌باری و طوفان شدید به هدف جلوگیری از رویدادهای احتمالی مسدود شد.

## بیش از ۴ هزار کیلوگرام مواد مخدر...

شامل بسته کشف‌شده مواد مخدر در مربوطات ولایت کندهار است.

در خبرنامه آمده که این مقدار مواد در نتیجه اطلاعات کشفی و راه‌اندازی عملیات نیروهای امنیتی از مربوطات حوزه پنجم امنیتی ولسوالی شورابک ولایت کندهار و در امتداد خط فرضی دیورند، کشف و بدست آمده است.

قوماندانی امنیه ولایت کندهار تاکید کرده که قرار بود این محموله مواد مخدر از آنسوی خط فرضی دیورند وارد افغانستان شود.

قاچاقبران مواد مخدر موفق به فرار شده و تلاش‌ها جهت بازداشت آنان ادامه دارد.

گفتنی‌است که مبارزه با مواد مخدر یکی از اولویت‌های اصلی امارت اسلامی به شمار می‌رود.

## پر حکومتي تشکیلاتو او لګښتونو...

نورو لګښتونه په تناسب سره راکم او د عام ولس د ژوند له کچې سره سم تنظیم کړي، دغه راز موږ باید دا خبره هم پام کې ونیسو چې خلکو ته د روزګار او مصروفیت پیدا کولو سمه او معقوله لار دا نه ده چې حکومتي تشکیلات بې ضرورته ورته زیات او یو شمېر هېوادوال له نورې مزدورۍ خوارۍ فارغ او سرکاري دفترو کې عبث پر څوکیو کېنوو، بلکې مسئولیت دادی چې خپل ولس ته د هېواد په ودانۍ کې نوې نوې لارې را وباسو او ګټورو چارو کې یې مصروف کړو- راځئ تاسې هم په دې اړه ژور فکر وکړئ.

## افغان اعلانات

### اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد

بدین وسیله به تاسی از فقره (۲) ماده چهل سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده میشود اینکه:

وزارت آب و انرژی در نظر دارد، قرارداد پروژه تحکیمات و حفظ و مراقبت ساحه لالی لونگی ولسوالی حصارک ولایت ننگرهار دارای شماره داوطلبی (MEW/PD/W031- 1403/NCB)را با شرکت ساختمانی شاه جهان وحدت دارای نمبر جواز D-80951 آدرس: پروژه جدید قلعه زمان خان مرکز کابل ،کابل به قیمت مجموعی مبلغ (۸,۲۵۶,۹۳۲) هشت میلیون و دوصدو پنجاه شش هزارو نه صدو سی و دو افغانی اعطا نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هر گونه اعتراض در زمینه داشته باشند، میتوانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اطلاعیه الی هفت روز تقویمی طور کتبی توام با دلایل آن رسماً به ریاست تدارکات وزارت آب و انرژی واقع سرک دارالامان- سناتوریم وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل معیاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرار داد منعقد نخواهد شد.۹۲۳۴

***

### اطلاعیه تغییر اسم دواخانه

محترم سید الهام هاشمی فرزند سید داود هاشمی ولدیت جمعه خان دارنده تذکره نمبر ( ۰۵۹۸۴- ۱۲۰۰ -۱۳۹۸) مسکونه اصلی ولایت پروان مالک امتیاز دواخانه مرتضی واقع مرکز ولایت پروان عنوانی معینیت غذا و ادویه وزارت صحت عامه عارض و خواهان تغییر اسم دواخانه خویش از مرتضی به اسم حسام صیام درملتون گردیده است .

اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت سه روز به آدرس معینیت غذا وادویه واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند.۹۲۴۸

***

### موضوع: اعلان دعوت به داوطلبی

وزارت فواید عامه، از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی پروژه خط اندازی و نصب علایم ترافیکی مسیر شاهراه عمومی تخار - کندز ( از پل بنگی الی دروازه شهر کندز بندر خان آباد ) در ولایت کندز به طول ۳۱٫۳۳۷ کیلو متر اشتراک نموده و سافت کاپی شرطنامه و اسناد تخنیکی را از آمریت تدارکات امور ساختمانی این وزارت بدست آورده، آفرهای خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سربسته از تاریخ نشر اعلان الی ساعت (۱۰:۰۰ قبل از ظهر ) مؤرخ ( ۱۴۰۳/۱۲/ ۱۳) به ریاست تدارکات، وزارت فواید عامه، واقع ملالی وات، سرک وزارت داخله اسبق، جوار اداره ملی احصائیه و معلومات ارایه نمایند. آفرهای ناوقت رسیده و انترنتی قابل پذیرش نمی باشد.

تضمین آفر بصورت گرنتی بانک مبلغ (۱۹۰,۰۰۰ ) یک صدو نود هزار افغانی بوده و جلسه آفرگشائی به تاریخ (۱۴۰۳/۱۲/۱۳) ساعت (۱۰:۰۰ قبل از ظهر) در ریاست تدارکات منزل اول تعمیروزارت فواید عامه تدویر میگردد.

***

### اطلاعیه به کرایه دهی

شرکت امارتی حفظ و مراقبت مکروریانها جهت بلند بردن عواید شرکت ۱۵ باب دکاکین خویش را به اساس قرعه کشی در ساحات مکروریان ها و پروژه مربوطه قرار ذیل به اعلان میسپارد

۱- دکان G 179 ساحه چهل باب واقع مکروریان سوم الف به مساحت ۴۲٫۱۸ متر مربع

۲- دکان F 171 ساحه انتری واقع مکروریان سوم به مساحت ۴۶٫۴۵ متر مربع.

۳- دکان A 100 مقابل بلاک ۱۱ و ۱۲ واقع مکروریان اول به مساحت ۲۶ متر مربع

۴- دکان F 175 ساحه انتیری واقع مکروریان سوم به مساحت ۴۲٫۹ متر مربع

۵- دکان A 101 مقابل بلاک ۱۱ و ۱۲ واقع مکروریان اول به مساحت ۲۶ متر مربع

۶- دکان A91 مقابل بلاک ۱۱ و ۱۲ واقع مکروریان اول به مساحت ۲۶ مرمربع

۷- دکان A 107 مقابل مسجد شریف حضرت محمد مصطفی (ص) واقع مکروریان اول به مساحت ۲۷٫۲۶ متر مربع.

۸- دکان A 69 مقابل بلاک ۲۵ واقع مکروریان اول به مساحت ۲۳٫۴۶ متر مربع

۹- دکان A ۷۸ مقابل بلاک ۳۸ واقع مکروریان اول به مساحت ۲۳٫۴۶ متر مربع.

۱۰- دکان A81 مقابل بلاک ۳۸ واقع مکروریان اول به مساحت ۲۳٫۸۰ متر مربع

۱۱- دکان A 82 مقابل بلاک ۳۸ واقع مکروریان اول به مساحت ۲۳٫۸۰ متر مربع

۱۲- دکان A 70 مقابل بلاک ۲۵ واقع مکروریان اول به مساحت ۲۳٫۴۶ متر مربع.

۱۳- دکان گلی واقع ۹۰ فامیلی پروژه تهیه مسکن به مساحت ۶۰ متر مربع

۱۴-یک باب اتاق مع تشناب جوار دکان 208G به مساحت ۳۶٫۳۶ متر مربع مکروریان سوم

۱۵-یکباب خبازی بلاک ۸ امنیت پروژه تهیه مسکن به مساحت ۴۴٫۷ و تهکوی ۱۳٫۸ متر مربع

آنعده اشخاص و افراد یکه علاقمند کرایه گرفتن دکانهای فوق الذکر را داشته باشند مطابق محتوای اعلان درخواست های خویش رابعد از نشر اعلان الی مدت (۲۱) یوم به آمریت املاک قباله ها ریاست محترم تجارتی شرکت امارتی حفظ و مراقبت مکروریان ها واقع بلاک ۲۳ مکروریان اول بسپارند و خودشان به زمان معینه غرض معلومات به بخش مربوطه مراجعه نمایند.۹۲۵۹

***

### اطلاعیه د عوت به داوطلبی

شرکت امارتی حفظ و مراقبت مکروریانها از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تادر پروسه مجدد تجدید پایپ های کانالیزاسیون ۹۰ فامیلی تهیه مسکن اشتراک نمایند این پروسه از طریق داوطلبی بازداخلی صورت گرفته داوطلبان می توانند سافت شرطنامه مربوطه را از طریق مدیریت عمومی تدارکات شرکت امارتی حفظ و مراقبت مکروریانها واقع بلاک ۲۳ مکروریان اول بدست آورند همچنان داوطلبان آفرهای خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه طبق قانون وطرزالعمل تدارکات طور سربسته به مدیریت عمومی تدارکات ریاست متذکره سپرده خود و یا نماینده قانونی شان ۲۱ روز بعد از نشر اعلان به ساعت ۱۰ بجه قبل از ظهر به تالار کنفرانس شرکت جهت اشتراک به آفرگشائی مراجعه کنند تضمین آفر مبلغ (۲۷۸۸۲ ) بیست و هفت هزار و هشت صدوهشتاد و دو افغانی بطور نقد و یا گرانتی بانک اخذ میگردد، قابل تذکر است آفرهای ناوقت رسیده و انترنتی قابل پذیرش نمی باشد.۹۲۶۰

***

### اطلاعیه تغییر مکان رهنمای معاملات

دفتر رهنمای معاملات نوی آمو به اسم محترم جمال الدین فرزند قیام الدین ولدیت عماد الدین واقع مقابل خارنوالی سابقه ناحیه ۴ موقعیت دارد و میخواهد به ساحه مقابل بلاک های هیواد وال ناحیه ۸ شاروالی کابل نقل مکان نماید . بناء مراتب به آگاهی شما رسانیده شد.۹۲۴۱

Shariat
Daily

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلور لارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
شماره توزیع و شکایات: ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶ / ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Wednesday 12 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 681

# د چین له سوداګریزو توکو بار اورګاډی افغانستان ته راخوځېدلی

د چین له چونګ چینګ ښار څخه د سوداګریزو توکو ډک یو اورګاډی ورمه ورځ د افغانستان په لور را خوځېدلی دی.

د چین شینهوا رسنی وایي، چې دغه اورګاډی له مخابراتي او یو شمېر نورو سوداګریزو وسایلو ډک دی.

د یادې رسنی د خبر له مخې، په راتلونکو ۱۳ـ ۱۵ ورځو کې به افغانستان ته را ورسېږي.

د یادونې ده، چې څه موده وړاندې هم د افغان سوداګرو په سوداګریزو توکو بار اورګاډی له چین څخه افغانستان ته راغلی و.




## غزني کې د اوبو بند د جوړولو چارې پیل شوې

د کلیو، بیارغونې او پراختیا وزارت د غزني ناوې ولسوالۍ په فیضو کلي کې د ۱۹ میلیونه افغانیو په لګښت د اوبو بند جوړېدو د چارو له پیل کېدو خبر ورکړی دی.

د دغه بند د بنسټ ډبره د یاد وزارت د سرپرست ملا محمد یونس اخوندزاده له لوري کېښودل شوې ده. ۳مخ



## ۲۱ زندانی از محبس پروان آزاد شدند

مقام‌های محلی ولایت پروان می‌گویند، بیست‌ویک زندانی از محبس ولایت پروان آزاد و به آغوش جامعه و خانواده‌های‌شان برگشتند.

این زندانیان بربنیاد حکم عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه‌الله که به استقبال از فرا رسیدن ماه مبارک رمضان صادر شد، از بند آزاد شده‌اند.

به گفته مقام‌های محلی ولایت پروان، علاوه از این بربنیاد فرمان یادشده، در مدت‌زمان حبس ۱۰۲ زندانی در محبس ولایت پروان نیز تخفیف رونما شده است.

شیخ عبدالرحیم احمد، رئیس محبس ولایت پروان گفته که در میان زندانیان آزاد شده زنان مردان و محجوزین نیز شامل‌اند.

زندانیان آزادشده از زندان ولایت پروان با استقبال از فرمان رهبر امارت اسلامی، از فضای آموزشی و اصلاحی موجود در محبس اظهار خرسندی کرده‌اند.

بربنیاد معلومات مسئولین محبس ولایت پروان در حال حاضر در این زندان بیش از ۵۴۰ تن زندانی اند.




## آغاز کار یک پروژه انکشافی در کندهار

وزارت آب و انرژی از آغاز کار یک پروژه انکشافی در بخش آب به ارزش ۱۱ میلیون و ۶۹۲ هزار افغانی در ولایت کندهار خبر می‌دهد.

به گفته وزارت آب و انرژی، پروژه یادشده شامل ساخت سربند، دیوار گبیونی و کانال مندوزی در قریه مندوزی ولسوالی میوند ولایت کندهار است. ص۳



## قطر برای مهاجرین عودت‌کننده در پکتیا شهرک رهایشی می‌سازد

وزارت امور مهاجرین و عودت‌کنندگان می‌گوید، قطر ابراز آمادگی کرده که برای مهاجرین عودت‌کننده در ولایت پکتیا شهرک رهایشی می‌سازد.

بربنیاد خبرنامه، حسین یونس، رییس جمعیت هلال‌احمر قطر در دیدار با مولوی عبدالرحمن راشد، معین مسلکی وزارت امور مهاجرین از ساخت شهرک یادشده اطمینان داده است.

آقای یونس تاکید کرده که قطر متعهد است تا برای مردم افغانستان بخصوص به مهاجرین برگشته به کشور که حقوق شرعی و قانونی دارند، کمک کند.

در همین حال، مولوی عبدالرحمن راشد، معین مسلکی وزارت امور مهاجرین از کمک‌های کشور قطر قدردانی کرده است.

آقای راشد افزوده که عودت‌کنندگان افغان نیازمند کمک و حمایت هستند.

قطر پیش از این نیز در بخش‌های مختلف با افغانستان کمک کرده است.

## میدان وردګو کې د ګاز ډبې د چاودنې له قربانیانو سره مرسته وشوه

د میدان وردګو ولایت د چک ولسوالۍ د عربانو کلي اروند له یوې زیانمنې کورنۍ سره د نغدو پیسو مرسته شوې.

دا سل زره افغانۍ د پېښو پر وړاندې د چمتووالي اداري له خوا زیانمنې کورنۍ ته ورکړل شوې.

زیانمنې کورنۍ له پیسو سره د مبارزې له اداري مننه کړې ده.

له بلې خوا د نوموړي ولایت له پېښو سره د مبارزې رییس مولوي فیض الله جلالي ویلي چې تر دې دمخه یې هم د مشرتابه له لارښوونې سره سم د زیانمنو هېوادوالو لاسنیوی کړی.

## فراه کې ۴زره کورنۍ له برېښنا برخمنې شوې

د فراه ولایت د برېښنا شرکت مسئولین وایي چې د اسلامي امارت له بیا واکمنېدو وروسته په دغه ولایت کې ۴ زره کورنۍ له برېښنا برخمنې شوې دي.

د یاد ولایت د برېښنا شرکت مسوولینو وویل، اوس مهال د ښار ۵ ناحیو اوسېدونکو ته برېښنا برابره شوې او په نږدې راتلونکي کې به د یو بل ترانسفارمر... ۳مخ




## صهیونست رژیم د اوربند له شرایطو سرغړونه کوي

د حماس جهادي غورځنګ د پوځي څانګې یوه ویاند ابو عبیده ویلي، هغه برمته شوي کسان چې ټاکل شوې وه د روانې فبرورۍ میاشتې په ۱۵ مې خوشې شي، تر بل امره ځندول شوي دي.

یاد جهادي غورځنګ په یوې خبرپاڼه کې ویلي، دغه لړۍ یې ځکه تر بل امره پورې ځندولې چې صهیونیست رژیم د اوربند له شرایطو سرغړونه کړې.

دا په داسې حال کې ده، چې د صهیونیست رژیم لومړي وزیر بنیامین نتنیاهو خپلو مرکچیانو ته ویلي، چې په قطر کې د حماس جهادي غورځنګ له پلاوي سره د اوربند په دویم پړاو خبرې وکړي.

## احمد الشرع د غزې په اړه د ټرمپ پر څرګندونو نیوکه کړې

د سوریې لنډمهالي ولسمشر احمد الشرع د غزې په تړاو د امریکا ولسمشر دونالد ټرمپ پر وروستیو هغو څرګندونو نیوکه کړې، چې فلسطینیان دې له فسطین څخه ووځي.

نوموړي له یوه برتانوي پادکست سره په مرکه کې ویلي، چې دغه څرګندونې له اخلاقي، سیاسي او انساني پلوه د منلو وړ نه دي.

احمد الشرع په خپلو خبرو کې ټینګار کړی، چې په نړۍ کې هیڅ ځواک نه شي کولی یو څوک خپلې خاورې پرېښودو ته اړ کړي.

د سوریې لنډمهالي ولسمشر په دې مرکه کې دا هم ویلي، چې فلسطینیانو له ډېرو ربړونو، وېجاړیو او وژنو سره سره بیا هم خپل مقاومت ته دوام ورکړ او خپله خاوره یې پرې نه ښوده.



## امریکا څارنوال محکمه بین‌المللی جرایم جنایی را تحریم کرد

بربنیاد گزارش‌ها، قصر سفید اعلام کرده که به دستور دونالد ترامپ، رییس جمهور این کشور، کریم خان، څارنوال محکمه بین‌المللی جرایم جنایی را تحریم کرده است.

بربنیاد تصمیم رئیس جمهور امریکا، کریم خان و اعضای خانواده‌اش پس از این نمی‌توانند به امریکا سفر کنند و تمامی حسابات بانکی و دارایی‌های آنان در این کشور مصادره خواهد شد.

این حکم در حالی صادر شده است که چندی پیش کریم خان همراه با یک څارنوال دیگر محکمه بین‌المللی جنایی حکم بازداشت دو مقام ارشد امارت اسلامی را صادر کرده بودند.

صدور این حکم در داخل افغانستان با واکنش‌های تندی روبه‌رو شده و به شدت محکوم شده بود.




## حادثه ترافیکی در کشور گواتیمالا جان ۵۱ تن را گرفت

در نتیجه یک رویداد دلخراش ترافیکی در کشور گواتمالا حداقل پنجاه و یک تن جان‌شان را از دست دادند.

پس از این حادثه، ریاست جمهوری گواتمالا برای اظهار همدردی با خانواده‌های قربانیان این حادثه سه روز ماتم ملی در این کشور اعلام کرده است.

مقام‌های محلی این کشور گفته‌اند که حادثه یادشده در نتیجه سقوط یک بس مسافربری از روی یک پل در نزدیکی پایتخت این کشور به داخل دریا رخ داده است.

حداقل ۳۶ مرد و ۱۵ زن قربانیان این رویداد مرگ‌بار ترافیکی را تشکیل می‌دهد.